التحقیق

# فی

# مَسئَلَةُ التَّطوُّعِ فِی السَّفَر

من افادات

شمس العلماء الحبر المحقق الفاضل المدقق الفاصل بین الافراط والتفریط

فضیلت الشیخ ابو العزیز

## غلام حضرت غلام الحنفي

مصنف

مولانا الحافظ ضیاء الله الحنفي





# التحقيق

# فی

# مَسئَلَةُ التَّطوُّعِ فِي السَّفَر

## من افادات

شمس العلماء الحبر المحقق الفاضل المدقق الفاصل بين الافراط والتفريط

فضيلت الشيخ ابو العزيز

## غلام حضرت غلام الحنفي

مصنف: مولانا الحافظ ضياء الله الحنفي

انتساب: د هغه والدينو په نوم باندې، چا چې زمونږ د پوهې لپاره خپل بې وسه همتونه صرف کړي دي.



| کمپوز | المكتبة دار الاحناف |
| --- | --- |
| محمد فهيم عاطف | 0334:9294455 |



نن سبا اکثر خلک د علماوو په جامه کې په سفر کې خلک د سنتو نه منع کوي، حالانکه دا غلطه خبر ده، ځکه د (نبي عليه السلام) نه او د صحابه کرامو نه او د تابعينو نه دا ثابته ده، چې دوی به په سفر کې سنت کول، چې ددې پوره وضاحت په دې رساله کې موجود دی.

پته: اخون آباد نمبر ۴ مسجد صديق اکبر، پېښور - پاکستان

# مَسْئَلَةُ التَّطَوُّعِ فِي السَّفَرِ

## مقدمه

نحمده و نصلي على رسول الكريم:

دا يو جزيي او فرعي مسئله ده، چې مخکې نه پکې اختلاف را روان دی دا مسئله مونږ، څکه زېر قلم کړه، چې نن سبا وهابيانو او رايونډيانو خبره خوره کړې ده، چې سفر کې سنت نه کول سنت دي، حالانکه په اسلافو کې دې باندې د هېچا هم قول نشته يو سفر کې پرېښودل د سنتو دي، سره د اولويت د کولو نه، او دويم سفر کې سنت پرېښودل دي سره د اولويت د پرېښودلو نه، په اسلافو کې دا مذهب د عبدالله بن عمررضی الله عنهما دی، يعنې ترک السنة سره د اولويت د فعل نه دوی به سفر کې بعض اوقات سنت نه کول نو د هغې وجهه امام ترمذي ذکر کړې ده، چې قائلين د ترک النسة عاملين بالرخصة دي، يعنې جواز د ترک شته، سره ددې نه سنت کول بهتر دي، کوم خلک چې وايي چې سفر کې سنت نه کول سنت دي او حديث د عبدالله بن عمر وړاندې کوي، دا دوکه ده هسې تلبيس په خلکو راوستل دي بهر حال....

**فايده:**

سنت يو رواتب دي، **دويم غير رواتب نهاري، دريم غير رواتب ليلي**

**سنن رواتب کوم دي هغه دا دي:** دوه رکعاته سهار مونځ نه مخکې او دوه دوه ماسپښين ماښام ماسخوتن نه پس او څلور مخکې د ماسپښين

عندالجمهور خلافًا للشافعي او مازيګر نه مخکې څلور رکعاته دا رواتب نه دي، خلافًا للمالک هغه وايي دا رواتب دي.

**غير رواتب نهاري:** ضحى، اشراق، رکعتين، بعد زوال الشمس، خلاف للشافعي.

غير رواتب ليلي: تهجد دا سنن غير رواتب دي، يا وتر عندالبعض.

**يادونه:**

دا خبره، چې عبدالله بن عمررضی الله عنهما د ترک السنة قايل دی، خو هلته نور صحابه کرام رضی الله عنهم ورباندې قايل نه دي، خلفاء راشدين ورباندې قايل نه دي که څوک دې ته بدعت وايي نو دا سنت دي، معظمو صحابه کرامو نه راځي، او چې عبدالله بن عمررضی الله عنهما د ترک السنة قايل دی هغه د رواتبو قايل دی، هر چې غير رواتب دي نو هغه ده کړي دي.

دويمه دا، چې [redacted] ده رواتبو کې ترک کړی او غير رواتبو کې اتيان کړی دی، د هغه قول داسې دی، چې ده دوه رکعاته په جمع وکړل ډېره يې ووهله او کښېناستو هلته چا مونځ کولو سنت يې کول نو ده وويل دا خلک څه کوي، چا ورته وويل چې مونځ کوي نو ده ووېل که زه نفل کوونکي وې نو ما به دا دوه رکعاته څلور کړی وی، ما خلفاء اربعه ليدلي، چې زيادت به يې په رکعتينو نه کولو.

# خو ددې د حديث نه مختلف جوابونه شوي

**لومړی:** عبدالله بن عمررضی الله عنهما عند وفات النبي صلی الله عليه وسلم د اتلس کالو و او د هجرت په اوولسمه مياشت سفرونه د غزواتو وغيره شوي دي، نو لس کاله د هجرت اته کاله او يوه مياشت د هغې نه اوباسه نهه کاله او شپږ مياشتې شو، نو د بدر غزا کې دده عمر نهه کاله او شپږ مياشتې وو، نو ثابته شوه چې بعض سفراتو کې ده سفر نه دی کړی، چې نه يې دی کړی نو دا قول محمول شو په علم دده باندې دا چې تلی هلته يې نه دي کتلي.

**دويم:** دا چې کله دده عمر زيات وو فتح مکه کې حنين طائف وغيره... نورو غزواتو کې يې شرکتونه کړي سفرونو ته تللی دی خو هغه غزوات ګڼ تعداد کې وو، مثلاً فتح مکه کې لس زره صحابه کرام شرکت لري، نو چې کله يو ځای کې خلك ډېر وي، مشران مخکې ودرېږي او کشران وروسته ودرېږي، نو په لس زره کسانو کې وروسته صف والا ته پته نه لګېږي چې مخکې خلکو څو رکعاته وکړل او څنګه يې وکړل، دغه شان حنين کې دولس زره وو، او چې تبوك ته ولاړل نو دېرش زره وو، دې کې به د شيخ رکعات څوك وشماري.

**درېيم:** دې روايت کې راځي، چې ده تکيه ووهله او نورو صحابه کرامو نفل کول، ته چې د يو صحابي عمل باندې استدلال نيسې او په جمع غفيره د صحابه کرامو استدلال نه نيسې دا ولې؟ عجيبه خو

داده، چې هلته ډېر صحابه كرام سنت كوي هغه دليل نه گرځوي، او دلته يو صحابي ترک کوي هغه دليل گرځوي. (د بخاري په روايت)

**ځلورم:** د عبدالله ابن عمرصاحب قول نافي دی او مونږ اثبات کوو او پخپله دده په قول کې تعارض دی امام ترمذي دده باره کې وايي، چې (رُوِيَ عنه اَنَّهٗ تَطَوَّعَ فِي السَّفَر) نو دده قول کې تعارض راغی او اذا تعارضا تساقطا اوس پته نه لګېږي، چې ده کړي او که نه دي کړي، نو چې مونږ نورو صحابه كرامو حالات وکتل هغې کې اتيان دی، نو عمل به کوو په کولو د سنتو باندې.

**پنځم:** چې عبدالله بن عمررضی الله عنهما په دوه رکعاتو مخکې د ماښام نه په هغې رد کړی وايي چې دا نبي عليه السلام مبارک او خلفايې راشدينو نه ددي کړي، نو چې د ابن عمرصاحب هغه قول چې ترک السنة فی السفر ته سنت وايې نو دا قول يې ولې نه منې؟ چې قبل المغرب دوه رکعاته کوئ.

**شپږم:** چې يو شی داير شي په مابين د نفي او اثبات کې نو ترجيح به اثبات ته وي، په زمانه د نبي عليه السلام کې لکه صلوة فی داخل الکعبة کې ترجيح اثبات ته ده.

دا يو فايده ضرور ياد ساتل پکار دي، اوس راځو اصل دلايلو او نصوصو ته.

## نفل كول سنت كول په سفر كې جايز دي، بلكې مستحب دي په نزد د جمهورو

لومړۍ: د نبي عليه السلام نه په روايت حسن او په روايت صحيح كې ثابت دي، چې ده مبارك دوه ركعاته د ماسپښين نه وروسته كړي دي د زوال نه وروسته هغه مبارك دوه ركعاته بالكل پرېښي نه دي او هغوى عليه السلام دوه ركعاته د ماښام نه وروسته او ماسخوتن نه وروسته په سفر كې نه دي پرېښي.

دويم: په صحابه كرامو كې، عمررضى الله عنه، علي رضى الله عنه، عبدالله بن مسعودرضى الله عنه، جابر بن عبدالله رضى الله عنهما، انس بن مالك رضى الله عنهما، ابن عباس رضى الله عنهما، ابوذررضى الله عنه، دې ټولو به په سفر كې سنت كول هم مخكې د فرضو نه او هم وروسته د فرضو نه.

دريم: په تابعينو كې: قاسم بن محمد، اسودبن يزيد، الحارث بن سويد، عطاء بن ابي رباح، طاوس، شعبي، مكحول، حسن بصري، النخعي، عروه بن الزبير، عمرو بن ميمون، جابر ابن زيد، ابو وائل رحمهم الله دوى به هم سنت په سفر كې كول او په فقهاء كرامو كې د امام مالك رحمه الله، امام شافعي رحمه الله، احمدبن حنبل رحمه الله، اسحاق رحمه الله، ابوثور رحمه الله او امام اعظم ابوحنيفه رحمه الله د دوى هم داسې قول دى چې سفر كې سنت كول پكار دي، عندالوسعة.

## د نبي علیه السلام نه قبل الفجر دوه رکعاته سنت ثابت دي

**(صحیح ابن خزیمه جلد (٥) صفحه (٢٠) رقم الحدیث ١١٩٦)**

## خپل سند سره د جابر بن عبدالله روایت پیش کوي

جابر بن عبدالله وایي، چې ما نبي علیه السلام ولیدو، چې خپله راحله یې کېښوله او کوز شو ترې نه، بیا یې لس رکعاته مونځ وکړو، او طاق یې وګرځول (اخري دوه رکعاته) په یو سره دوه دوه رکعاته به یې کول بیا طاق یې وګرځول په یو باندې بیا یې د سهار دوه رکعاته وکړل بیا یې مونږ ته جمع راکړه د سهار.[1]

**ابوبکر** وایي دا خبر تصریح کوي، په دې باندې چې نبي علیه السلام د سهار سنت په سفر کې کړیي دي او هغه اخبار، چې مونږ روایت کړی په تاریخ کبیر کې، چې نبي علیه السلام ویده شوی و چې راپاڅېدو د سهار مونځ قضا شوی و، نو هغوی علیه السلام چې د سهار مونځ کولو نو لومړی یې د سهار سنت وکړل بیا د سهار مونځ یې وکړو دې نه هم پته ولګېده چې نبي علیه السلام په سفر کې سنت کړي دي.[2]

---

1: وهابیان ددې حدیث غلطه ترجمه کوي او وایي چې وتر یې یو رکعت وکړل، حالانکه پوهېږي نه، ځکه یو لفظ د او تر واحدة او بل او تر بواحدة دی، ذوی چې کومه ترجمه کوي دا او تر واحدة ترجمه کوي، نو که داسې روایت پیدا شي نو بیا یو رکعت وتر به ثابت شي، حالانکه روایتو کې اوتر بواحدة دي او د هغې مطلب دا دی چې اخري شفعه طاق وګرځوله په یو رکعت سره ، نو درې شو.

2: پته ولګېده چې د سهار د سنتو قضا شته او هغه فقهاء چې وایي چې یو ځای درنه قضا شي نو د سنتو قضا شته او چې صرف سنت درنه قضا شي د هغې قضا نشته، نو دا قول د فقهاتو نه لرې دی، ځکه سنت د فرضو نه مخکې دي که وروسته وای، نو دا به تابع د فرضو وې. او مونږه وایو علت د قضا معیت د فرضو نه دی، بلکې علت دا دی چې (پاتې په بله صفحه...)

## دويم دليل په ركعتي الفجر

### مصنف ابن ابي شيبه جلد ١ صفحه ٣٤٢ باب ٣٩٢٩

عائشه صديقه رضی الله عنها فرمايي، چې هغه مونځ چې نبي عليه السلام نه په حضر کې ترک کړی او نه يې په سفر کې ترک کړی او نه يې بيماری کې پرېښی او نه يې په صحت کې پرېښی دی هغه د سهار سنت دي، نو پته ولګېده چې سفر کې نبي عليه السلام سنت کړي دي

## دريم دليل په ركعتي الفجر

هغه مشهور حديث، چې نبي عليه السلام نه د سهار مونځ په سفر کې قضا شوی و، بيا چې راپاڅېدو نو فرض او سنت دواړه يې وکړل يعنې قضاء يې راوړه د دواړو!!

---

دا سنت ډېر موکد دي،.... ځکه يې قضا راوګرځوله، مصنف عبدالرزاق کې دي، چې عبدالله ابن مسعودرضی الله عنه راغی جمعه ولاړه وه او ده نه سنت قضا شول، نو جمعه يې وکړه او جومات کې ناست و، چې کله لمر راوختو نو دوه رکعته قضا يې راوګرځوله. د عبدالله ابن مسعود صاحب دغه عمل دا د هغه فقهاوو دليل دی چې څوک قضا د سنتو وايي. حديث د بلال ډېرو کتابونو راخيستی، سنن ابي داؤد جلد ١ صفحه ٧٥ مسند احمد جلد ٤ صفحه ٤٤٤ دار قطنی جلد ١ صفحه ٨٣٧، مسندبزار جلد، ٤، صفحه ١٩٩، مسندابويعلی جلد٥، صفحه ٤٣٠، معجم الکبير جلد١٩، صفحه ٢١٤.

## خلورم دليل د سهار په سنتو

جامع الاصول جلد ۵ صفحه ۳۳۸۰

نبي عليه السلام به د سهار سنت سفر کې نه پرېښودل سفر، حضر کې به يې نفل په دابه کول کوم خوا چې به يې مخه وه.

## پنځم دليل د سهار په سنتو

صحيح البخاري جلد ۱ صفحه ۳۷۲

باب من تطوع في السفر غير دبر الصلوات وقبلها: بيا وايي سهار سنت نبي عليه السلام په سفر کې کړي دي.[3]

## د ماسپښين نه مخکې دوه رکعاته نبي عليه السلام په سفر کې کړي دي

سنن ابي داؤد جلد ۱ صفحه ۳۹۰ رقم الحديث ۱۲۲۲

براء بن عازب رضی الله عنهما وايي، چې نبي عليه السلام سره مې سفر کړی، خو يو سفر کې هم د زوال نه وروسته دوه رکعاته يې نه دي پرېښي.[4]

---

3: دومره صحابه وايي چې نبي عليه السلام د سهار سنت کړي او عبدالله ابن عمر صاحب وايي چې ما نه دي ليدلي، پته ولګېده، چې دا قول دده حمل دی په علم دده باندې، کړي يې دي خو ده نه دي ليدلي.

4: دا حديث په ضعيف ابوداؤد کې الباني او شعيب الارنوط د مسند احمد په تعليق باندې ضعيف ګرځولی دی، ځکه چې ددې په سند کې ابوبصره راغلی او هغه مجهول دی، خو ليکن د دوی د نبي عليه السلام سره دشمني ده، حديث ته يې ضعيف ويلي دي، حالانکه حديث غريب دی، لکه امام ترمذي وايي چې دا غريب دی او غربت(پاتې په بله صفحه کې)

## حلية الاولياء جلد ا صفحه ۱۱۸

عبدالله بن عباس رضی الله عنهما وايي، (د سنت في السفر باره کې چا پوښتنه وکړه، نو جواب يې ورکړو)، چې نبي عليه السلام به حضر کې څلور رکعاته کول او سفر کې به يې دوه رکعاته کول او هر چې مونږ يو، نو مونږ په سفر کې د فرضو نه مخکې هم سنت کوو او فرضو نه وروسته هم سنت کوو.

## څلور رکعاته د ماسپښين نه مخکې هم ثابت دي

### مصنف ابن ابي شيبه جلد ۱ صفحه ۴۲۶

صحابه كرامو تابعينو به د ماسپښين مانځه نه مخکې څلور كعاته كول او په يو حال کې يې هم نه دي پرېښي.

---

منافي د صحت سره نه دی، بله دا چې ابن حبان او عجلي وايي چې دا ثقه دی، امام ترمذي وايي ما د امام محمد نه پوښتنه وکړه په باره ددې حديث کې چې دا حديث درته په بل سند معلوم دی او که نه سوا د ليث ابن سعد نه، امام ترمذي وايي چې هغه وويل چې ماته ددې نه علاوه بل سند نه دی معلوم، هغه دا حسن وګڼلو او د ابن عمر صاحب نه روايت دی چې ده به مخکې د فرضو هم سنت نه کول په سفر کې او وروسته به يې هم نه کول، او دده نه دا هم ثابت دي چې نبي عليه السلام په سفر کې سنت کړي دي، نو اختلاف کړی دی اهل علمو چې په سفر کې به سنت کوي او که نه؟ نو بعضې اهل علم وايي چې کوي به او په دې باندې قول کړی دی احمد او اسحاق او بعضې وايي چې نه به يې کوي، څوک وايي چې نه به يې کوي هغه عمل په قبول رخصت باندې کړی، البته کول يې افضل دي. دا قول د اکثرو اهل علمو دی چې هغې په سفر کې سنت کول غوره ګڼي. او دا حديث نورو کتابونو هم راخيستی دی، مسند احمد او ابن خزيمه هم راخيستی دی.

## نبي علیه السلام نه د ماسپښین مونځ نه پس دوه رکعاته په سفر کې ثابت دي

**سنن الترمذي جلد ۲ صفحه ۱۲۳**

ابن عمررضی الله عنهما وایي ما د نبي علیه السلام مبارک سره په سفر کې د ماسپښین دوه رکعاته وکړل او د هغې نه وروسته مو دوه رکعاته وکړل امام ترمذي وایي دا حدیث حسن دی.

## نبي علیه السلام د ماښام نه پس دوه رکعاته په سفر کې کړي دي

**مسند احمد جلد ۲ صفحه ۹۰**

ابن عمرصاحب وایي نبي علیه السلام په سفر کې د ماسپښین مونځ وکړو بیا یې دوه رکعاته وکړل او مازیګر یې هم دوه رکعاته د سفر وکړل او د هغې نه پس یې څه نفل ونکړل او بیا یې د ماښام درې رکعاته وکړل د هغې نه پس یې دوه رکعاته وکړل او د ماسپښین مونځ یې هم دوه رکعاته وکړل د هغې نه پس یې دوه رکعاته وکړل نو بعدالمغرب دوه رکعاته ثابت شو.[5]

---

5: دا حدیث ډېرو کتابونو راخیستی دی شرح السنه للبغوي جلد۱، صفحه ۳۴۸، شرح معاني الاثار جلد۱، صفحه ۲۷۹، قیام اللیل جلد۱، صفحه ۵۵، مسند الطرطوسی جلد۱، صفحه ۲، معجم لابن الاعربی، سنن ترمذي جلد ۲، صفحه ۴۵۵

## د نبي عليه السلام نه په سفر کې د ماسخوتن نه وروسته دوه رکعاته ثابت دي

**مسند احمد جلد ۲ صفحه ۹۰**

دا مذکور حدیث دی.

**دا خو سنن رواتب وو او هر چې غیر رواتب دي نو هغه د نبـي علیـه السلام نه ثابت دي.**

## نبي عليه السلام په سفر کې د چاشت مونځ کړی دی

**صحيح البخاري صفحه ۱۵۶۲ چاپ بیروت**

ابن ابي ليلی وايي، چې د نبي عليه السلام نه چاشت مونځ باره کـې سواء د ام هاني نه چا هم روایت نه دی کړی هغه وايي چې نبي علیه السلام د فتحې مکې په ورځ ددې په کور کې غسل وکړو بیـا يـې اتـه رکعاته مونځ وکړو خو داسې لنډ مونځ باندې مـې نـه و لیـدلی، خـو دومره وه چې رکوع او سجده به يې تمامه وه، مکمل به وه (ثابته شوه چې د ضحی اته رکعاته يې کړي دي). (6)

## نبي عليه السلام په سفر کې تهجد کړي دي

**مطالب عاليه جلد ۲ صفحه ۲۹۹**

6: ابن حجرعسقلاني په فتح الباری کې وايي، چې د ابن ابی ليلی دا قـول محمـول دی پـه علم دده، باقي دا ثابت دي د نبي عليه السلام نه، چې ددې نه علاوه نور هم په سفر کـې سـنت کړي دي، په آخره کې بيا ذکر کوي، چې ده به قصر کولو، نو ثابته شوه چې دا د سفر مونځ و

علي رضی الله عنه وايي، چې کله سبا کړو نبي علیه السلام په بدر کې سبا له نو دا شپه يې په ويښه تېره کړه داسې حال کې چې دا مسافر وو.

## نبي علیه السلام په سفر کې په راحله هم نفل کړي دي

**الاوسط لابن منذر جلد ۱ صفحه ۳۵۲**

ابن عمررضی الله عنه وايي چې نبي علیه السلام کله د مکې نه واپس کېدو، نو په خپله سورلۍ يې نفل مونځ کولو، دا مسئله مختلفه ده دلته مناسبه نه ده

دا حدیث سنن دار قطني جلد ۲ صفحه ۲۲ کې هم ذکر کړی دی روایت د انس بن مالک دی، دا وايي چې نبي علیه السلام به سفر کې نفل کول، نو د اوښې مخه به يې قبلې ته کړه او الله اکبر به يې وکړلو.

## نبي علیه السلام به په وخت د تودیع المنازل کې هم دوه رکعاته کول

**صحیح ابن خزیمه جلد ۸ صفحه ۳۵۲**

انس بن مالک رضی الله عنهما وايي چې نبي علیه السلام به يو ځای کې هم دمه نه کوله، مگر د هغې مخه بنه به يې په دوه رکعاتو کوله

روايت عند توريع المنازل: عبدالله بن عمر سنت کې ډېر کلک و نبي عليه السلام چې حج عمرې ته تلی څلور ځل په مختلف لاره تلی او په مختلفه لاره راغلی و، عبدالله ابن عمررضی الله عنه په هغه لاره تلی دی چېرته چې نبي عليه السلام دوه رکعاته مونځ کړی دی هم هلته دوه رکعاته مونځ کړي، چېرته چې يې دمه کړې ده هم هلته يې دمه کړې. د بخاري روايت پر دال دی، په مرور د زمان سره هغه خلکو جماعت لږ بدل کړی و، ابن عمرصاحب خلکو ته تعليم ورکوي وايي هغه غرونه چې ښکاري اوچت هلته نبي عليه السلام دوه رکعاته مونځ کړی دا مسجد چې خلک يادوي دا نه دی.

اوس خو هر څه ورک دي د وجهې د اهل حديثو دا ډېر بيکاره خلک دي، نه به د بدو خلکو ځيزونه ختموي للعبرة او نه د به د ښو خلکو اثار ختموي، د وجهې د اطمينان نه په دې کې تصفيه ده. يو عالم په دې باندې مستقل کتاب سره د تصاويرو ليکلی ډېر اثاريې جمع کړي دي البدايه کې ابن کثير وايي چې نبي عليه السلام په بدر کې چې کوم نغرې جوړ کړی و هغه وايي ما په سترګو وليدو، نو اوس نشته وهابيانو ختم کړی.

بېخ کندي د دين يې وکړه دې يهوديانو، د وهابيانو په ذريعه باندې لويه بېخ کندي يې دا وکړه چې څلور مذهبونو منځ کې يې تفرقه راوسته او دا يې ټوټه ټوټه کړل، هر سړی پخپله مجتهد شو.

**الباب الثاني صحابه کرام وبه هم په سفر کې سنت کول مخکې د فرض نه او وروسته.**

**عمرفاروق رضی الله عنه په سفر کې سنت کول.**

ابن ابي شيبه جلد١ صفحه ٣٣٥ [7] سالم صاحب وايي نبي عليه السلام او عمررضى الله عنه سفر كې سنت كول. [8]

المروزي په قيام اليل كې ددې تخريج كړى دى بسنده عن عن ابيه.

حضرت علي رضى الله عنه به سفر كې سنت كول.

اوسط لابن منذر صفحه ٣٣٦ عامر صاحب وايي علي رضى الله عنه به سفر كې سنت كول. [9]

---

7: آمام بخاري رحمه الله عليه يو څو ثلاثيات لري، څومره معروف دى پورته يې پرې غږ ليكلې وي، ثلاثى او ثلاثى، خو چې ابن ابى شيبه وګوري، په هغې كې ډېر ثلاثيات دي او مسند ابى حنيفه وګورې ثنايات به پكې پيدا كړې، ابن ابي شيبه د متقدمينو نه دى دده شيخ دى هلته سند كمېږي به خپله، امام مالك صاحب درجه په ثناياتو او ثلاثياتو كې مقدمه ده.

8: اعتراض: چې دا خو مرسل شو؟ جواب: چې روايت د سالم د نبي عليه اسلام دا به مرسل شي، خو روايت د سالم د عمررضى الله عنه دا غير مرسل متصل دى او كه مرسل هم شي، خو مرسل عندالجمهور مقبول دى. سوى الشافعى، خو ددې مرفوع روايت هم شته چې په پورته كتاب كې ذكر دى.

9: كه ددې په معارضه كې څوك د مصنف عبدالرزاق هغه روايت پيش كړي، ثوير بن ابى فاخته هغه روايت كوي، چې على رضى الله تعالى عنه به په سفر كې سنت نه كول نه مخكې د فرضو نه، نه وروسته د فرضو نه؟ جواب: ددې په سند كې ثوير بن ابى فاخته راغلى دى او دا ضعيف دى او دا چې كوم دى مرمي و په رافضيت او په كذب باندې ، نو كه رافضيت څوك جرحه ګڼي، نو مجروح شو او كذب خو په اتفاق سره جرحه ده . اقوال د ائمه وو په حق د ثوير بن ابي فاخته كې، ١: ابواحمدابن عادي وايي چې دا منسوب دى رافضيت ته ٢: دارقطني وايي متروك دى. ٣: بوبكر بن ابى خيثمه د يحيى نه روايت كوي ، چې ثوير ضعيف دى. ۴: يعقوب الجزجاني هغه وايي چې دا ضعيف الحديث دى. ۵: ابوزرعه وايي چې دا قوي نه دى. ۶: ابوحاتم وايي، چې ضعيف دى. ٧: نسايي وايي چې ثقه نه دى. ٨: عباس الدورى يحيى ابن معين نه نقل كوي، چې ثوير بن ابي فاخته ليس بشيئ دى. ٩: محمد بن عثمان بن صفوان السقفي هغه د خپل پلار نه روايت كوي، چې صفيان ثوري به ويل چې ثوير بن ابي فاخته د كذب ستن وه. دا روايات حافظ ابن حجر په تهذيب(پاتې په بله صفحه كې)

**عبدالله ابن عباس به هم سفر کې سنت کول.**

مصنف ۳۳۶ جلد، ۱ مجاهد رحمه الله وايي ابن عباس صاحب به سفر کې سنت کول، دا روايت اوسط لابن منذر هم راخيستی دی صفحه ۳۳۵ جلد، ۸.

**عبدالله ابن مسعود رضی الله عنه به هم سفر کې سنت کول.**

اوسط لابن منذر صفحه ۳۳۹ ابراهيم نخعي روايت کوي.

**عمر صاحب او عبدالله صاحب به په سفر کې سنت کول.**

انس ابن مالک رضی الله عنه به سفر کې سنت کول.

معجم الکبير صفحه ۲۴۵ جلد، ۱۱ ابواليمان وايي چې انس بن مالک رضی الله عنه سفر کې سنت کول او ابن منذر دا هم زيات کړي دي، چې سنت به يې کول قبل الفرض و بعدالفرض نو دا دليل د رواتبو هم شو.

عائشه رضی الله عنها به هم په سفر کې سنت کول.

مصنف ابن ابي شيبه صفحه ۳۳۴ جلد، ۱ ابن سيرين وايي چې عايشه رضی الله عنها به هم په سفر کې سنت کول. جابر بن عبدالله رضی الله عنه به هم سفر کې سنت کول.

---

تهذيب دويم جلد ۳۶ صفحه کې نقل کړي دي . امام بخاري په تاريخ اوسط کې وايي: کان ابن عيينة يغمره. ايوبي سختياني وايي: لم يکن مستقيم الشان، ابواحمدالحاکم وايي : ليس بالقوي عندهم. يعقوب بن سفيان وايي: لين الحديث. علی ابن جنيد وايي، متروک ، ابن حبان وايي: ده‌يه سندونه اړول را اوړول، تر دې چې په رواياتو کې يې داسې خبرې راغلې ته به وايې چې د خانه نه جوړې شوي. ابن جوزي وايي چې دا ثقه نه دی .

اوسط لابن المنذر جلد ۸، صفحه ۳۳۳ محمد ابن قیس وایي چې زه داخل شوم په جابر ابن عبدالله باندې او هغه به په سفر کې سنت کول.

**ابوذرغفاري رضی الله عنه به هم سفر کې سنت کول.**

اوسط لابن منذر صفحه ۳۳۳ جلد، ۸ مجاهد صاحب وایي اباذر او عمررضی الله عنه دې دواړو به سفر کې سنت کول او حسن بصري رحمه الله په دې صفحه وایي چې صحابه کرامو به په سفر کې سنت کول همدغه شان د حسن صاحب نه دا روایت هم دی چې صحابه کرام به کله په سفر کې لاړل نو مخکې او وروسته سنت به یې کول.

نو دا رایه د صحابه کرامو شوه، چې هغوی به په سفر کې سنت کول او د صحابه کرامو باره کې الله تعالی فرمایي، چې صحابه کرام او هغه خوک چې د صحابه کرامو اتباع کوي الله د دوی نه راضي دی او دوی د الله نه راضي دي.

## الباب الثالث التابعین

یعنې تابعینو به هم په سفر کې سنت کول.

قاسم محمدبن ابي بکر من فقهاءالسبعه المدینه امام مالک رحمه الله، چې به دده قول پیدا کړو د بل چا به یې بیا نه قبلولو.

مصنف عبدالرزاق، ایوب السختیاني وایي چې ما قاسم بن محمد ولیدو چې سفر کې یې سنت کول.

**طاوس رحمه الله به هم سفر کې سنت کول.**

مصنف عبدالرزاق مذکوره صفحه ده، معمر وایي چې طاوس به سفر کې سنت کول لکه څنګه چې به یې حضر کې کول.

شرح معاني الاثار صفحه ۲۴۶ جلد، ۲ اسامه بن زيد وايي د طاوس رحمه الله نه مې پوښتنه وکړه سفر کې به سنت کوو که نه؟ نو هغه راته وفرمايل چې څه شی دې منعه کوي ولې سنت پرېږدې؟؟

حسن بن مسلم وايي زه درته حديث بيانوم ما پوښتنه وکړه د طاوس نه په باره د سنت فی السفر کې نو هغه وويل، چې ابن عباس رضی الله عنهما وايي چې نبي عليه السلام باندې مونځ فرض شوی په حضر کې څلور رکعاته او په سفر کې دوه رکعاته او لکه څنګه چې نفل په حضر کې قبل الفرض او بعدالفرض دي دغه شان په سفر کې هم دي.

**امام شبعي رحمه الله عليه به هم سفر کې سنت کول.**

مصنف عبدالرزاق صفحه ۵۴۹ جلد، ۲ عيسى ابن ابي عزه وايي چې ما وليدو عامر الشعبي فرضو نه به يې وروسته هم سفر کې نفل کول او مخکې هم.

**مکحول رحمه الله به هم سفر کې سنت کول**، محمد بن راشد وايي چې ما مکحول وليدو د فرضو نه به يې مخکې سنت کول او وروسته هم، عطا ابن ابي رباح به هم سفر کې سنت کول. مصنف عبدالرزاق مذکوره صفحه ده ابن جريج وايي ما د عطا صاحب نه پوښتنه وکړه چې کله سفر کوم مخکې وروسته به ترې نه سنت کوم که نه؟ نو هغه وويل: چې نعم!!

څه رخصت هم اخلم او سنت هم اخلم، قصر کوم په فرضو کې دا رخصت شو او سنت کول دا عمل بالسنه شو.

**سفيان الثوري رحمه الله به هم سفر كې سنت كول.**

مصنف عبدالرزاق صفحه ۲۶۰ جلد، ۲ عبدالرزاق وايي ما ثوري وليدو چې نفل يې په سفر کې کول مخکې د فرضو نه او وروسته د فرضو نه.

**ايوب السختياني به هم سفر كې سنت كول.**

مصنف عبدالرزاق، معمر وايي ما د ايوب سختياني سره سفر وكړه نو هغې به د ظهر نه مخكې وروسته سنت كول او د سهار مونځ نه به يې مخكې دوه ركعاته كول او د ماښام نه پس بهٔ يې هم دوه ركعاته كول او ماسپښين نه وروسته به يې ډېر ركعاتونه كول.

**اسود بن يزيد رحمه الله بهٔ سفر كې سنت كول.**

مصنف ابن ابي شيبه صفحه ۳۳۴ چې اسود بن يزيد رحمه الله به سفر كې سنت كول.

**ابراهيم النخعي به هم سفر كې سنت كول.**

ابن ابي شيبه صفحه ۳۳۴ جلد، ۱.

چې مغيره او ابراهيم النخعي به په تطوع فی السفر باك نه گڼلو، نه مخكې د فرضو نه او نه وروسته د فرضو نه.

**حسن بصري رحمه الله به هم سفر كې سنت كول.**

مصنف ابن ابي شيبه صفحه ۳۳۵ جلد، ۱ حسن بصري رحمه الله وايي مونږ د صحابه كرامو سره ملاو شوي وو هغوی به مخکې د فرضو نه هم سنت کول او وروسته به يې هم سنت کول.

**عروه بن الزبير به هم سنت کول په سفر کې.**

ابن ابي شيبه مذکوره صفحه، هشام وايي چې زما پلار به په سفر کې د فرضو پسې څه مونځ کولو چې سنت دی.

عمر بن ميمون، ابو وايل، دوی به هم سفر کې سنت کول.
اشعث وايي چې ما صحبت کړی د اسود بن يزيد او د عمرو بن ميمون وائل دوی به فرض وکړل او هغې نه وروسته به يې مونځ کولو چې سنت دی.

حارث بن سويد، رحمه الله جابر بن زيدرحمه الله دوی به هم سفر کې سنت کول.
اوسط لابن منذر صفحه ۴۵۳ جلد، ا هغه څوک چې د هغوی نه ثابت دي، چې دوی به سفر کې سنت کول متعدد کسان دي:
قاسم بن محمدو اسودبن يزيد، حارث بن سويد، عطاء بن ابي رباح، طاوس، شعبي، مکحول، حسن بصري، النخعي، عروة ابن الزبير، عمربن ميمون، جابر بن زيد، ابووائل، مالک، شافعي، احمدبن حنبل، اسحاق، ابوثور، اصحاب الراى يعني ابوحنيفه.

**خاتمه:**

رایه د فقهاوو او محدثینو په تطوع فی السفر، په حالت د سیر کې امام محمدصاحب نه ترک ثابت دي، یو خبره شته چې نن سبا به به یې نه ترک کوي، ځکه دا نښه د وهابیانو ګرځېدلې ده.

غرف الشذي، صفحه ۸۸ جلد، ۲.

کله چې به سفر د سیر وو، نو هغه به رواتب ترک کول او نزول کې به کولو.

دررالاحکام صفحه ۱۵۳ جلد، ۲.

فقهاوو په منځ کې اختلاف شوی دی، چې سنت به پرېږدې کنه، خو ځه وایم چې کول دي په حالت د نزول کې او ترک دی په حالت د سیر کې.

البحرالرائق صفحه ۸۸ جلد، ۵، غوره داده چې حالت د امن وي، نو سنت به کوي او که تکلیف وي نو بیا دې د عذر د وجهې نه پرېږدي.

حاشیه ردالمختار، صفحه ۱۴۱ جلد، ۲. مسافر به سنت کوي دا غوره قول دی.

شرح سنن ابن ماجه، صفحه ۷۵ جلد، ۱ صحیح خبره داده، چې حالت د سیر کې ترک وشي او حالت د نزول کې دې سنت وکړی شي.

عون المعبود، صفحه ۶۴ جلد، ۴ علماء کرامو اتفاق کړی په دې خبره چې سفر کې سنت مستحب دي.

**دا زمونږ د فقهاوو کرامو اقوال دي په باره د تطوع فی السفر کې.**

دا خبره غلطه ده، چې حالت د سیر کې ترک اولی دی، ځکه د نبي علیه السلام نفل علی الراحله راغلی دی نو که افضل نه وي، نو نبي علیه السلام ولې کول هغه به افضل عمل کولو دې باره کې د فقهاء کرامو ډېر اقوال دي، متعدد کتابونو راخیستي دي:

**الانصاف صفحه ۳۹۱ جلد ۳، المبدع صفحه ۳۳۲ جلد ۲، زادالمعاد صفحه ۴۵۶ جلد۱، کتاب لام صفحه ۱۲۰ جلد ۵، الرساله صفحه ۳۲۱ جلد ۱، فقهه السنه ۲۸۸ جلد ۱، نیل الاوطار صفحه ۲۶۸ جلدد ۲، تحفۀ الاخوزی صفحه ۹۶ جلد ۳.**

په دې کې د ابن عمررضی الله عنه روایت ذکر کوي، چې دده زوی سفر کې سنت کول ده ورباندې رد وکړو.

کومو محدثینو چې په دې باندې ابواب لګولي دي:

**۱ مجمع الزوائد صفحه ۳۷۱ جلد ۲، باب التطوع فی السفر، قبل الفرض و بعدها ۲ مطالب عالیه صفحه ۲۹۸ جلد ۱، باب. سنن الصغیر صفحه ۲۹۵ جلد ۲، ۳،۲ اوسط لابن منذر صفحه ۳۲۸ جلد ۸ ذکر صلوۀ التطوع فی السفر قبل المکتوبه،۴ التحاف الخیره المهره بزوائد المسانیه عشره للبوصیری جلد ۲، صفحه ۹۸، باب فی الذکر الاثر الذی روی ان الجمع بین الصلوتین من غیر عذر، من الکبائر مع ما دلت علیه اخبار المواقیت و ماجاء من التطوع فی السفر.**

**۵ سنن الدارالقطني، صفحه ۳۹۵، جلد ۱. باب صلواۀ التطوع فی السفر ۶ صحیح بن خزیمه صفحه ۲۴۱ جلد ۲، جماع ابواب التطوع فی السفر، سنن ابن ماجه صفحه ۲۴۰ جلد ۱، باب التطوع فی السفر، ۸ سنن الترمذي صفحه ۴۳۴۱ جلد ۲، ۹ ابي داؤد، صفحه ۱۴۹ جلد ۴ بیروت چاپ دا باب لګوي.**

**تنبیه:**

دا مسئله په دې ځای ختمه شوه، هر چاته پکار دي چې دا مسئله په کلکه یاده کړي او ددې صحابه کرامو نومونه یاد کړي، چې دوی تطوع فی السفر کړي او ددې تابعینو نومونه یاد کړي که چا په سفر

کې سنت نه کول، نو په ښې طريقې سره يې پوه کوئ چې دا ښه عمل دی دا بيکاره عمل نه دی د صحابهٔ کرامو نومونه ورته واخله چې دا د دوی عمل دی ناروا نه دی.

**اعتراض:**

چې فرض معاف دي، نو سنت خو به ضرور معاف وي؟

**جواب:** هغه تقصير د شارع له خوا نه ثابت دی او سنتو کې ثابت نه دی نبي عليه السلام ويلي وي چې سفر کې سنت مه کوئ.

هغه خلک چې دې باندې ډېره سختي کوي او خلک په سختی سره منع کوي، چې دا سنت مه کوئ په سفر کې هغه وهابيان، پنچپيريان، خاصکر تبليغيان په دې خبره ډېر زور ورکوي نو هر چاته پکار دي چې ځان ترې نه وساتي.

**لومړی مسئله**: هغه سفر، چې احکامات ورسره بدلېږي هغه چې دومره مصافت طی کړې، چې د هغې مزل درې شپې او درې ورځې د اوښ په سفر باندې، سره ددې نه چې خوب، خوراک، لمونځ وغيره... دا يکې هم وکړې، چې نن سبا ۷۲ اويا کيلو ميټر جوړېږي.

**دويمه مسئله:** که يو ځای داسې وي، چې د هغې دوه لارې وي يو په اوبو کې وي، يو په وچه باندې وي، په اوبو کې چې کومه لاره ده، هغه په درې ورځې کې طی کېږي او په وچه چې کومه لاره ده هغه په دوه ورځو کې طی کېږي، نو که دا د اوبو په لاره باندې ځي، نو لمونځ به نيم کوي او که په وچه باندې ځي، نو بيا به لمونځ نيم نه کوي مکمل به کوي.

**درېيمه مسئله:** فرض لمونځ کې قصر کول، يعنې څلورو په ځای دوه کول دا واجب دي، که چا زيات وکړل، نو گنهگار دی

**څلورمه مسئله:** په سنتو کې قصر نشته او بعضو دا جایز ګرځولي دي، چې مسافر لپاره حق شته دی ، چې دا دې سنت پرېږدي ، خو لیکن صحیح قول دا دی، چې که حالت د خوف و ، نو بیا دې سنت نه کوي او که حالت د قرار او د امن وو، نو بیا دې سنت کوي.

**پنځمه مسئله :** که چېرته نیت یې د اقامت وکړو د پنځلس ورځو په دوو کلو کې، شپه یې یو ځای کې وي او ورځ یې بل ځای کې وي، نو دا مقیم ګرځېږي، نو پوره لمونځ به کوي .

**شپږمه مسئله:** که یو مسافر نیت د اقامت وکړي، په داسې حال کې چې دا په لمانځه ولاړ وي ، نو اوس دې دا لمونځ پوره کړي، منفرد وي او که مقتدي وي.

**اوومه مسئله:** که چېرته یو مسافر د مقیم پسې اقتدا وکړه ، نو څلور رکعاته دې پوره کړي، او که امام مونځ فاسد کړي، دا دې بیا دوه رکعاته وکړي .

**اتمه مسئله:** ښځه دې بغیر د محرم نه د درې ورځو په اندازه سفر یا ددې نه زیات نه کوي.

**نهمه مسئله:** مسافر که چېرته د غلو نه وېرېدو او ملګرو ورته انتظار نه کولو، نو دده لپاره جایز دي، چې دا مونځ دې وروسته کړي.

لسمه مسئله: دا د الله تعالی د طرف نه میلمستیا ده ، د بنده لپاره بنده ته پکار دي چې میلمستیا قبوله کړي او دوو په ځای درې یا څلور رکعاته ونکړي.

**دا را خیستل شوي دي د فتاوی عالمګیري نه**

وما علینا الا البلاغ و اخر دعونا اَنِ الحمد لله رب العلمین

